# کندهار



زموږ محبوب او ګران واکمن اعلیحضرت
معظم همایونی محمد ظاهر شاه چې د هیواد
خپلواکۍ ئې تر سیوري لاندې ساتل شوې
او د ژوندانه په هره برخه کې د افغان
ملت ته بې اندازه ترقي په برخه شوې ده



اعلیحضرت شهید سعید محمد نادر شاه (رح)
د استقلال ګټندوی او د افغانستان د
ټولو مادي او معنوي ترقیو مؤسس

د کندهار مجله د کندهار د نجیب ولس په نمایندګی د
خپلواکی د ورځی مبارکی د همایونی معظم اعلیحضرت
حضور ته او نور ټولو هیوادوالو ته وایی او د
استقلال و شهیدانو ته د مغفرت دعا کوی

## (د نوی ګل د مبارکی عرض)

په دې مباهات کړ د سلطنتي نشر خانو راست د افغان شاه دوست ولس ته زېری ورکړه چه د جوزا د پنځمی شپې د دوهمی برخی څخه وروسته پاك څښتن والاحضرت شهزاده سردار احمدشاه ته زوی ورکړ، او د معظم اعلیحضرت په اراده دې نوی ګل نوم «محمد ظاهر» کښېښول سو.

کندهار:- په خپل وار ګران ټولواك او معظمې ملکې، والاحضرت شهزاده احمدشاه او والاحضرته خانول او د پاچاهي لويې کورنۍ ته د دې نوي نېکمرغه غړي د قدم ایښولو له کبله د مبارکۍ عرض وړاندې کوی او د خپلو معظمو مشرانو په سیوری کې ئې د پاك خدای څخه د عمر اوږدوالی غواړي.

# کندهار

میاشتنی خپرونه

ادبی . تاریخی . اجتماعی . علمی

مسئول چلوونکی:

## ا، م «کرزی»

اد: د شهیدانو واټ

د دولتی مطبعې څخه ته

د ۱۳۴۱ المریز کال د [جوزا] میاشت
د ۱۳۸۱ قمری کال د [محرم] «
د ۱۹۶۲ میلادی کال د [جون] «
د دریم کال دریمه ګڼه
پرله پسې ګڼه [۲۷]

کالنی «بیه»
په کندهار کښی [۴۸] افغانی
په دننه مملکت کښی [۳۴] «
په دباندنیو هیوادو کې یو ډالر

# ددې کتاب مضامین

# په ژوند کې د خپلواکۍ ضرورت

بناغلی عبدالصمد [ویسا]

انسانان د خپل حیات په دوره کې همېشه د دوه ډوله ژوند سره مخامخ دي چې لومړی مادي ژوند او په دوهم پلا کې معنوي ژوند دی. لومړی مادي ژوند د هغه حیواني غرائزو او طبیعي خواهشاتو څخه عبارت دی چې هر ژوندی مخلوق د تنازع البقا تر قانون لاندې د هغه د تامین او تکمیل د پاره ملګیا دی لکه: خوراك، څښاك، تولید مثل او نور.

دوهم- معنوي ژوند دی چې وروسته د مادي ژوند نه مخصوص یوازې انسان ته چې یو اجتماعي او سیاسي حیوان دی پیدا کېږي او دا عبارت دی د عقیدې او مفکورې ازادي او د ناموس او نورو طبیعي او مدني حقوقو شخصي او اجتماعي عفت او شرافت، افتخارات او ملي عنعنات ساتل، اجتماعي واجبات او ولسي وظائفو پر ځای کول د ځان او ټولنې د ښه ژوند په څخه حرکت کول او د دوی په څېر نور داسې د ژوند شرائط او ضروریات دي چې افراد او ولسونه ئې د خپل ژوند د تامین او بشپړ کېدو د پاره ضرورت او اړتیا ورته لري.

نو که انسان د خپل دې مادي او معنوي ژوند د تامین او تکمیل د پاره واك او اختیار و نه لري او یا د ده واك او اختیار چې د هغه د ژوند د ضروریاتو او اړتیاؤ د پاره ئې بایدو لري څنې سلب او واخستل شي نو طبیعي ده چې دې ژوند په ډګر کې د یوه مات وزري مرغه په شان د حوادثو او د زمانې د طوفانو دست خوشه او د خپل طبیعي او اجتماعي ژوند کولو څخه محروم او بې برخې کېږي چې په دې صورت کې نو حیات حقیقي مفهوم او طبیعي خوند چې د ژوند لومړی ارکان او محور بلل کېږي د لاسه ور کوي او په دې ډول کې ژوند د یو واقعي مرګ څخه کم توپیر نه لري. نو د همدې فارمول په اساس انسانان هم په انفرادي او هم په اجتماعي ژوند کې د ځان د خپلواکۍ او آزادۍ چې د ژوند لومړنی شرط دی د هغې د لاوډلو او په لاس راوړلو د پاره مجاهدې او مجادلې کوي.

که د بشر د تاریخ پاڼې یو په بل پسې سره راواړو د انسان د پیدایښته بیا تر اوسه چې په زرهاؤ او حتی په لکهاؤ خونړي واقعات او حوادث چې د ملتونو او ولسونو ترمنځ واقع شوي دي، د ټولو اصلي او اساسي علت همدغه د ژوند د لومړي اصل یعنې د آزادۍ د ساتنې موضوع ده چې د بشري ټولنې تاریخ ئې په وینو او خاورو باندې اړولی دی ځکه همیشه چې کم ولس او یا شخص بیا پر علت باندې دا اراده کړېده چې د نورو د آزادۍ حق سلب او غصب کړي نو د هغه قوم او ولس له خوا د سخت مخالفت او مقابلې سره مخامخ شوی دی او دا مخالفتونه په ډېرو خونړیو تصادمو او تباه کوونکو حملو باندې پای ته رسېدلي دي. سکندري یرغلونه چنګیزي چپاونه، د پنځلسمې پېړۍ استعماري تاړاکونه ددې مدعا ښه مثال دی د افغا-نستان ولس چې د پنځوزرو کالو راهیسې د آزادۍ مشعل

په لاس کې او د پېړۍ پېړیو
راهیسې دې خپل فطري حق
او ملي ناموس په ساتلو کې
هیڅ کله د ځان او مال په ښندلو
کې د هیڅ ډول فداکارۍ او
قربانۍ څخه ځان نه دی
ژغورلی همیشه ددې جګې
سیمې شاه ځلمو خپل د طبیعي
حق د ترسره کېدو تاریخي او بې
نهاجماتو او سپړلو او چپاو او
لکه: د مقدونیې سکندر
مغولي چنګېز او د ۱۹ قرن
غربي امپریالستي چپاو په مقابل
کې خپل هغه طبیعي او فطري
ملي غیرت ښکاره کړی دی او
هر متجاوز ته یې داسې په سوك
او توره جواب ورکړی دی چې
بیا یې ددې لورې آزادې سیمې
وخوانه کتلي لا هم نه دي په
۱۹ پېړۍ کې چې غربي امپر-
یالیزم د تسلط او استعمار
طوفاني سیلاب د آسیا په لویه
قاره راکښېوت ډېر اقوام او
ولسونه یې تر خپلو څپاندو څپو
لاندې کړل او په دې ترخ کې یې
د لویې پښتونخوا سیمې ته
هم خپلې د طمع او آز
سترګې را واړولې او غوښتل
یې چې دا ښکلې خاوره هم تر
خپلې تورې استعماري پردې
لاندې راولي خو د شیخ سعدي
ددې بیت په مصداق:-
هر بیشه گمان مبر که خالیست
شاید که پلنگ خفته باشد
غربي استعمار چې په سرسپینه
ډېره باندې دلم د سپیني خیال
کړی و د حرص او تسلط غاښونه
یې ووهل د پښتون ولس سل
کلنې د استعمار پر ضد مجادلې
غربي امپریالیزم ته دا جوته
کړه چې پر خپله کمزورۍ او
غلطۍ باندې پوه شي چې ددې
آزادې سیمې تسخیر او محکو-
میت یو آسان کار نه دی تر
هغو چې ۴۴ کاله پخوا د لوئې
پښتونخوا د آزادې سیمې یو
صالح او فداکار زوی پښتني
سردار اعلیحضرت محمد نادر شاه
شهید «رح» په مشرۍ او لار-
ښوونه پښتني شاه ځلمیانو
وروسته له سلو کالو سختو
مجادلو او استعماري تاړاکو
څخه د آخري او وروستي ځلې
په اثر ددې مدبر او د وطن د
مینې پتنګ د خپلې ځلاندې
تورې په برېښ غربي استعمار
ته د اول وار دپاره د آسیا په
لویه قاره کې سخته او جبران
ناپذیره ماتې ورکړه او د هغه
نامې مېړه د تورې د ماتې
ورکولو نه یې بیا تر اوسه استعمار
په ماتې او شکست اخته دی او
تر دې دی چې د ټولې نړۍ څخه
خپل زاړه ګوډي ټول کړي نو
دا دی چې مونږ هر کال په دغه ورځ
د هغه خپل ملي قهرمان او د
لوئې پښتونخوا د ناجي او د هغه د
نوربالیو ورونو او سرتېرو مېړو
ملګرو د فداکارۍ او قربانیو
یاد کله چې د خپلې خاورې او
ګران هېواد د آزادۍ د حاصلولو
په لار کې یې کړېدي نو یادوو او د
هغوی پاك روح ته درود وایو او د
هغه ملي قهرمان او د ده د مېړنو
ملګرو پاك روح ته دا ډاډ ورکوو
چې افغان ولس به ستاسې دا
مقدس امانت د خپل محبوب
ټولواك تر سایې لاندې د سر او
مال په ښندنه وساتي او دا ډاډ
ورکوو چې زمونږ د لوئې پښتون-
خوا د یوه آزاد پښتونستان د
حقوقو د حاصلولو دپاره به د هیڅ
ډول مرستې او فعالیت څخه
دریغ ونه کړو او ترڅو چې مو
خپل پښتني وروڼه د ژوندو دې
طبیعي او فطري حق یعنې
خپلواکۍ ته نه وي رسېدلي یو
کړی به هم په غمه کښېنو .
په آخر کې د وطن د آزادۍ

[ پاته دریم مخ کې ]*

ښاغلی عبدالحی حبیبی

# اخوند پنجو
## او ددې ملي کارونه
### په پښتو ادب کې

د پښتو ادب په منځنۍ دوره کې تر ۹۰۰ هـ وروسته په ځینو لویو کورنیو او سیاسي او دیني ډلو کې روزل شوي دي.

په دې دوره کې پښتانه په یوه اوږده حیاتي مجاهده گرفتار ؤ او د دې ملي مجاهدې یو ډېر مهم مرکز هم د اټك راپدې خوا د پښتونستان سیمې او غرونه وه.

دلته ملي رجال او د پښتو رهبرانو د مغولو د غښتلي او لوئې شهنشاهۍ سره چې مرکز ئې دهلي ؤ مقابله کوله، او د دوی د نهضتونو او ملي حرکاتو اساس هم د آزادۍ ساتنه او د پښتو د ملي موجودیت خوندي کول ؤ.

له دې حرکته سره برابر یو بل محرك هم تل موجود ؤ، چې دوی به د دیني تبلیغ او تلقین له لارې خپل هغه او مړی ملي مقصد ټینگاوه، او ددې تلقین له پاره نو دوی بخپله ژبه د خلکو پوهونه او څېړونه لازمي گڼله.

په داسې یوه اجتماعي او سیاسي چاپېر کې نو ملیت او دین او ادب ځنگ پر ځنگ سره تله، او موږ وینو چې د پښتو ادب په تاریخ کې ځینې درنې او لوئې کورنۍ او ډلې پیدا شوي، چې د اجتماعي او دیني او سیاسي اوږدو مقاصدو لپاره ئې د پښتو ادب هم بخپله غېږ کې روزه او موږ د ژبې ځینې گرانبها آثار او کتب ددغو کورنیو او ډلو په غېږ کې پال شوي دي.

په دې سلسله کې موږ دغه درې کورنۍ پېژنو:-

۱- د یوسفزو گڼه او لو په کورنۍ چې ملك احمد او ملك گجو ئې سیاسي مشران او شیخ ملي ئې اجتماعي او دیني مشر ؤ، او د شیخ ملي په لاس دوتر (دفتر) په پښتو ولیکل شو.

۲- د شیخ رحمکار کاکا خیله کورنۍ چې له دهٔ کړ شخصه وه او دده ډله.

۳- د خوشحال خان خټك کورنۍ، او ډله ئې.

۴- د پیر روښان کورنۍ او ډله ئې.

۵- د اخوند درویزه کورنۍ او ډله ئې.

۶- د سلطان محمود گډون او شیخ پنجو ډله.

دا کورنۍ او ډلې پوازې د اټك او خیبر تر منځ د پېښور په معموره وادۍ کې تېرې شوي دي، چې ډېر د پښتو ادبي آثار او کتب او د شعر دیوانونه او د تاریخ کتابونه په کښې لیکل شوي دي، او که سړی نورې پلټنې او گروېژنې وکي، نو ښائي چې دغسې نورې ډلې او کورنۍ هم میندلې کي، خو دلته به زه پوازې د اخوند پنجو پر ډله باندې د تاریخي واقعو په رڼا

*[ دوهم مخ پاته ]

د محصل پاك روح او د هغه د نورو پاتې وروڼو او نورو ځلمیانو چې پدې لاره کې ئې ځانونه قربانۍ کړي وه درود وایو.

تل دې وي استقلال، ژوندی دې وي زموږ محبوب تولواك.

آزاد دې وي پښتونستان.

کې ایښې دي سره وژغېږم:- هغه وخت چې د پښتنو اولاوو کې اود لودیانو د دراني کورنیو برم په هند کې راغورزار پدو، کې ؤ . او بابر مغولي بزیالي د پښتنو بیرغ غرق او نه ملا تړلي وه، د براباسین پدي غره او پوري غاړه کې د مهابن ترلمنو پورې د آزادۍ او ملي تنظیم او دیني اصلاح تحریك روان ؤ، چې مشر ئې سلطان- محمود گډون ( پښو کاکر پښتون ) ؤ، او دغه گډن قوم د هزاره په وادۍ کې د مهابن ترغره پوري پراته دي «۱» سلطان محمود بوه د له غښتلی او خورا تکړیالی شاگردان او پیروان و رو زل او دده په شاگردانو کې پښو سري ډېر مشهور سو، چې نوم ئې سید- عبدالوهاب او د سیدغازي زوی ؤ، دده پلار سیدغازي په هند کې داو دیانو سقوط پسې تر گو لیدلي او پښتو نخوا ته راغلی ؤ، ده د یوسفزو په یار حسین کې د ملك گجرخان تر سیوري لاندی ژوند کاوه ځکه چې ۹۸۹هـ په اټك کې وفات سو او هوري ښخ دی.

سید عبدالوهاب تر سلطان محمود وروسته د پښتنو مشر سو، او دده د خلافت چوغه ئې واغوستله او هغه وخت چې عمر ئې ۴۸ کاله ؤ په ۹۹۰هـ د پښتنو اکبرپوري ته راغی او دلته ئې له اټکه تر خیبره پوري ملي او روحاني تنظیم جوړ کړ، او د عمر پر ۹۶ کال د رمضان په ۲۷ ورځ دوشنبې ۱۰۴۰هـ هلته مړ شو او قبر ئې تر اوسه هم معلوم دی خلك ئې زیارت کوي.

دی په اخوند پنجو له دې جهته معروف سو، چې د اسلام پر پنځو بناوو ئې ډېر تاکید کاوه او دغه ئې د دیني تبلیغ مرکز وه، خودې سړی او دده د لاې د طریقت د سجادې سره سره نوره هم په تاریخ کې ارزه، او کوم وخت چې د پښتنو بومشر شیخ فضل خدرزي پسې په پېلوټ کې دده مرید سو، نو د اخوند پنجو تورة لا نوره سوه، او نفوذ ئې په ټوله پښتونخوا کې خپور سو، حتی رضواني وائي: چې په ۹۹۳هـ اکبر پاچاهم په اکبرپوره کې ده ته راغلی ؤ «۲» عبدالوهاب دره وروڼه عبدالرحمن او عیسی درلوده او دغه عیسی تحفې تالیفونه هم لري، او تر ده وروسته د پښتنو د دغې ډلې ریاست عبدالرحمن ته ور سېد «۳» او اخوند یونس هم دده له مشهورو شاگردانو څخه ؤ، چې په خاد کې ئې مزار تر اوسه هم ډېر مشهور دی.

د اخوند پنجو په شاگردانو کې دوه وروڼه اخوند چالاك او اخوند سبك (عمر) خورا شهرت لري، او د ختکو څخه تر ننگرهاره د دوی نفوذ خپور ؤ، دوی د افغانستان له شمالي خواؤ څخه ختکو ته راغله، او د چهرزو او اباسین او کابل بگرام او هزاره او بونیر په غرو او سیمو کې ئې د جهاد هنگامه توده کړه، د هغه وخت ډېر مشاهیر لکه: جمیل بیگ د خوشحال خان ورور، او عمر خان د شیوې رئیس، او باکو خان د پنجتار مشر، او اخوندشاه د هوتي مردان او د غرغښتي بار خان د دې ډلې مهم غړي وه، او شیخ رحمکار کاکا صاحب هم له دوی سره ملگری کوله «۴» د دغې ډلې یو هدف داؤ، چې د هزاره په شمالي غرو کې د

---

«۱» حیات افغاني ۲۴۶ مخ.

«۲» د رضواني تحفة الاولیا ۳۴ مخ

«۳» تذکرة الابرار ۱۸۵-۱۸۸

«۴» تذکره ۱۳۲۰ مخ تحفه ۳۲ مخ

کشمیر وادۍ او کاغان، پکلي
او الائي او ننده‌ار او چیلاس
پورې ځینې خلک وه، چې په
دوی کې اسلام نه‌ؤ خپور شوی
او د مغلو مشر دوما نومېدی، نو
دغو پښتنو دغه خلک د اسلام
په دین مشرف کړه، او هر ځای
ئې مساجد جوړ کړل، او بل
سیاسي او ملي مقصد ئې داؤ
چې د مغلو په مقابل کې خپل
ملي محاذ قوي کاندي او د مغلو
د تجاوزاتو مخه ونیسي.
د دوی ملي قوتونه د باکو خان
په قیادت او د ملا چالاك په فتوا
تر پنځو زرو نفو پورې له
یوسفزیو څخه تشکیل شوي وه
او دوی په پکلي کې د چهاچل
کلا ونیوله او هلته ئې آزادۍ
پرچم اوچت کړ، مګر اورنګ
زیب د مغلو امپراطور په
۱۰۷۷ھ د کابل صوبه‌دار
میرخان او د اټك فوجدار
کامل خان د دېرو قواؤ سره
پر دوی باندې وګمارل.
دلته د افغانانو ملي قوا تر ۵۰
زرو پورې ورسېده، او د اورنګ
پاچا له ظالمو لښکرو سره ئې
خورا کلك او اوږدې جنګونه
وکړه. اورنګزیب خپل پو
خسرونو او زلنه لښکرې

قوماندان اغرخان هم دلته
راواستاوه، ده د دېرو پښتنو
سرونه ووبري کړه او په کابل
او پېښور کې ئې له هغو څخه
کله منارونه جوړ کړل.
د مغلو درباري مؤرخان د دغو
جنګو حال داسې لیکي چې:
په یوه جګړه کې د دوو زرو نفو
پښتنو سرونه پرې کړل سوه او
هغه ئې دهلي ته واستول، او هلته
ئې یو جګ کله منار ځني
جوړ کړ.
د مغلو مؤرخان داخبر منی
چې د مخه د دهلي پاچهانو د
پښتنو په داخلي ژوند او کارونو
کې مداخله نه کوله، مګر کوم
وخت چې اورنګزیب دا ترتیب
مات کړ، نو ئې نتیجه دا سوه
چې ټولو پښتنو ددوی په مخ
کې قیام وکړ، او دا هنګامه د
۱۰۷۷ھ کال تر شواله هلته
نبوده وه.

## ددې ډلې علمي کارونه

د چالاك ملګرو او د اخوند پنجو
شاګردانو ځینې دیني او علمي
کتابونه په فارسي، عربي
پښتو هم لیکلي دي، چې ددې
ډلې د پوهنې ذوق او علمي نشاط
ښه ځینې ښکاري، او دا راته

څرګندېږي چې دوی یوازې
جنګي او دیني مشران نه‌وه
بلکه د علم او قلم خاوندان هم
وه. او پخپله چالاك دغه
کتابونه کښلي وه :-
فتاوای عربیه، بحر الانساب د
پښتنو او ترکانو او ساداتو او د
طریقت د مشایخو انساب دریم
کتاب ئې غزویه وه، چې د خپلې
ډلې غزاوې ئې له کوهستاني
کافرانو سره شرح کړي دي.
څلورم کتاب ئې مناقب اخوند
پنجو ؤ په فارسي.
دغسې هم شیخ عبدالرحیم بن
میان علي د اخوند پنجو مناقب
په فارسي کښلي وه، چې دغه
مناقب په ۱۱۹۸ھ دا کبرپوري
شاعر [خاکي] د [مناقب خاکي]
په نامه نظم کړل، او شیخ
عبدالغفور عباسي پېښوري هم
د اخوند پنجو مناقب لیکل.

## د دوی پښتو آثار

په دغه ډله کې چې د پښتو ادب
له پاره څه خدمت شوی دی
اوس مانه دغه درې کتابونه
معلوم دي.
۱- پخپله سید الوهاب په درو
ژبو پښتو، فارسي، هندي

[ نور په اتم مخ کې ]

ژبپوهنه

د آجکل له اردو مجلې څخه
د ښاغلي [نجیب] ترجمه

# د قدیمې سنسکرت ژبې
## ویدو ، او ژندو اوستا باهمي مشابهت

افغانستان، ایران او هند له زړو کلو څخه راپه دېخوا ئي ډېر نژدې تاریخي تعلقات سره لري د پښتون یا پښتون لفظ خو کټ مټ د پکتیا د لفظ اقتباس دی او د ایران لفظ هم اماردها یعنی د ښې له لفظ څخه وتلی دی چې په پای کې د آریا لفظ ځینې جوړ شوا او د هند یا هندوا نوم خو بر آریائیانو باندې هغه وخت کېښودل شو چې زموږ د میني (بهارت) ته ئې هجرت وکړ آر په ژبه د سنسکرت کې و کښت کوونکو او پې کرونکو ته وائي او اصل ته هم ویل کېږي چنانچه په پښتو کې دا کلمه تر اوسه پورې د اصل په معنی سره مستعملیږي د بلخ او پامیرو سیمو له کشف شوو کتیبو څخه دا ښکاریږي چې دې کام په هغه وخت کې ځانونه (ایریو-دو وهنګوود) بلله چې عیناً د آریه نسل مفهوم ځني اخیستل کېږي په ژند او اوستا کې د یر ځایونه د آریه لفظ راغلی دی د داریوش او کشتاسب د قبرو په کتیبو کې چې په څور لسمه قبل المسیح پېړۍ کې پاچهان وه هم د آرین او آرین نسل بیان ضبط دی پر ته له دې څخه زموږ او د دوی تاریخي

اژدیکت د ویدو له منترو او ژندو اوستا له ګاتو څخه ښه ترا څرګندیږي د لغاتو مشابهت د صرف و نحوی اشتراک او د عقائدو جذباتو مطابقت زما د ترسوی بیان پوره ظاهر کوي او دا په ثبوت سره رسوي چې دا دري کاموندې د یو وطن ښاخونه او په ابتدا کې د یوه کاله اوسېدونکي وه د سنسکرت او د دغو سیمو د ژبو د یګانګۍ او مشابهت مثالونه په د تحصیل حاصل مصداق دی ولې چې د نني ورځې تول تعلیم یافته وګړي پوهیږي چې د دغې ژبې او د هغو ژبو بې شمېره لفظونه یو بل ته ورته او د مور و پلار د ژبې د سو او لاد د حیثیت لري خو سره له دې ئې دلته زه څو الفاظ د مثال په توګه سره په مقابله سره ودول راوړم :.

| | سنسکرت | فارسي | پښتو |
|---|---|---|---|
| ١- | ماتري | مادر | مور |
| ٢- | پتري | پدر | پلار |
| ٣- | باهو | بازو | بازو |
| ٤- | جانو | زانو | زانو |
| ٥- | جیها | زبان | ژبه |
| ٦- | شر | سر | سر |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۷- | شر | خر | خر |
| ۸- | کهر | خر | خر |
| ۹- | اشو | اسپ | آس |
| ۱۰- | گو | گاو | غوا، گوا |
| ۱۱- | گودهوم | گندم | غنم |

صرفي او نحوي نژدېکت د دغو ژبو ناسي نه دژند اوستا او سنسکرت د شلو کولو مطالعې څخه ښه ترا څرګند بدای شي چي به دې ځای کې ئې ځو مثالونه راوړه کېږي .

| سنسکرت | ژندو اوستا |
|---|---|
| وشو اور کشو جن و نی | دسپادر کش چنیتی |
| وشو اور کشو نشیتی | دسپادر کش انشیتی |
| میتهاشر نو نی ابشام واچم | میتهاهنو نی ابشام واچم |

* * *

مناده بدایغة یا بر چرتا ای ها یاه
مت داد بدریش یا فرسروتا ازها یاد
بری گا چای میدها اونسا نه هتسا
بیری چسای هز دا استانه زاستو
آنواه بتن رو هرسیه چي منسا
اپ داد اشاری دره یا کا نیما نگها
آف ددو سور منشاه سون رنیاه
اپ داد ونگی میش نگهو هنری مانا
نت نو ابرشتار تسم میو چه اسر
هدتهو برسا ارش مای واچا اهورا
کوتاه چنتیا نپار نسیه بورا و بیه
کنازا تها بتا اشایساه بور دبو
کوتاه کم دسواده تار نشچه داد
کنا کـو نیگ متار نچا داد
ادهوانم کو بوماسم اکشیتی فریستی توت
اودانم کی تاماود کیانی تری فسی تهواد
تادرك میدها وشم انین چي وت توی
نچد مزدا وا سپتمي اینچو دو یاه

له پورتني گانو څخه دا واضح شوه چي گانونه هم د ودو په څېر سره متترونه او او به برخه ئي نظم ده او په الفاظو کې ئي اوزده سور اروانکي حروف علت موجود دي چي د ترنم لپاره خاص موزونیت لري رسم الخط ئي میخائي CUNCIFORM وچي د سنسکرت په بدل سره له چپه څخه و راسته طرف ته لیکل کېدی .

بر ته له دي دلایلو او براهینو څخه دا برانیانو او افغانستانیانو د قدیمو مذهبي خدایانو نومونه زموږ د وېدك مذهبي خدایانو له نومو څخه جوړ شوي دي مثلاً لکه هوم چي [ په سنسکرت کي سوم ] هور چي [ په سنسکرت کي سوريه ] مویرا چي [ په سنسکرت کي متر ا ] معرمزدا چي [ په سنسکرت کي اسر- میدها ] راغلي دي او دغا دول د ژند لفظ په [ سنسکرت کي له چهنده ] سره او دیسنا لفظ په سانسکرت کي له یجن یا یـگیه سره مترادف دي .

په ویدو کي د ۳۳ خدایانو ذکر راغلي دي چي ۸ دوسو بوولس درودر ۱۲ دا دتیه یو داندر او یو دپرجاپتي دباره

دی په ژند او اوستا کی هم ۳۳ خدایان په همدغه ترتیب سره منل شوی دی چی مافوق الانسان نې ګڼله او درنو نوم نې پر ایښی ؤ .

په ویدو کی چی یو بل روایت دیم اج اوردی وسوان مندرج دی په همدغه ډول سره په ژند او اوستا کی هم یو نقل راغلی دی چی د باختری ایټرېچر په حیث نې نومونه په کریم او اوردی واهن سره اړول شوېدی . ؤ علاوه پردغه باندی هغه یوه تمثیلی قصه چی په ویدو کی راغلې ده چی ترتا یعنی اندر له یو نخوفناک مار [اهی] نومی سره جنګ وکړ او پر هغه باندی بریالی شو په ژند او اوستا کی هم دغه قصې په څېر سره عیناً یوه بله قصه ذکر شوېده چی د ترتا پر عوض کی تهرتونا او د [اهی] په عوض کی اژی استعمال شوی دی چی په پښتو او فارسی کی تراوسه یوری همدغه کلمه په همدغه شکل او مفهوم سره مستعملیږی په رګ وید کی بیا د اهی کلمه په دوو سره اړول شوېده چی لفظی معنی نې پرده ده دا قصه د دوو مفهومو لرونکی ده یو مفهوم نې دادی چی وریځ پر لمر باندی پرده غوړوی او هغه پټوی مګر په آخر کی لمر داور پخر پرده څیری او اژدها - ران محوه کوی . دوهم مفهوم نې دادی لکه څنګه چی اندر یعنی لمر پر خپل مخالف اهی یعنی وریځ باندی بری پیدا کوی همدغه شانته د نیکی طاقت پر بدی باندی فتح میندونکی کېږی . د باختری ثانویت مسئله یعنی تصور د اهرمزدا یا انګرامینو یا یعنی اهرمنیت پر دغه ډول خیالو باندی مبنی معلومیږی دفارسی ژبی د اژدها یا اژی داهك لفظ کټ مټ د سنسکرت داهی داهك سره په مفهوم او لفظی التباس کی تام مشابهت لری په ویدو کی واندریا د لمر خدای نه پر ورتر یا اوریخو باندی د فتح میندلو له حیثه څخه د ورترهن یا ورتر کهن نوم چی د وژونکی معنی لری هم ایښوده شوی دی چی په باختری ژبه کی ورتر راګنا ورته ویل کېږی .

په اوستا کی د ویدو د ناسقیه خدایانو نومونه هم موجود دی چی د ګندهرو او کرشنا په مقابل کی د ګندار یوا او

[د پنځم مخ پاتې]

## اخوند پنجو ....

خبری او ایك کتاوه ، ده د حنفی فقهی مشهور کتاب کنزالدقائق په پښتو منظوم کړی ؤ .

۲- د اخوند چالاك یو مرید ملامست زمند و ، چی په پښتو نې یو کتاب سلوك الغزات ولیکه دا کتاب منثوری او منظومی برخی او تاریخی او حماسی مضامین لری خلکو نه دغزا تشویق کوی ، او د خپل پیر چالاك مدح کوی ، او د خپلی دلی د جنګو او غزاؤ احوال لیکی . ددې کتاب یوه ناقصه واحده نسخه د کابل د مطبوعاتو په کتابخانه کی شته ، او پښتو ټولنی رانیولې وه .

۳- میان باشاه دا کبرپوری د کندی شیخان او سپدونکی د مخه ذکر شوی (مناقب خاکی) له فارسی څخه په پښتو منظوم ترجمه کړ او دا ومری او دریم کتاب خطی نسخې د پېښور په شاوخوا کی پیدا کېږی ، او رضوانی په تحفه کی دې د لی د رجالو احوال او مناقب په تفصیل سره لیکی .

# د علم النفس پېژندنه

[۴]

چې څېړنې ئې دادي :-

١- مظاهر چې دی کله، کله ملاحظه کوونکی تېر باسي او په خطا کې ئې اچوي نو دی چې کومه نتيجه له هغو مظاهرو څخه اخلي هغه غلطه وي لاسي وګوري، چې اکثره کسان هر کله د اسې شيانو تظاهر کوي چې هغه په ده کې نو لګه نه لري او په دغه سبب نو دوی نفسي عالم چې تجربه ئې لېږدي نسي کوولای چې د هغو کسانو د نفوسو اعماقو ته دي ورسيږي او داورته ښکاره چې د هغوی په عقلي پوتو دي خبر شي،

٢- کوم وخت که يو وغږادی چې له بله شخصه د هغه د شعور او تجربو پوښتنه وکړي نو هغه هرومرو يا بيان ورته لنډ دی او يا مبالغه پکښې کوي .

٣- اکثره وخت چې يو ملاحظه کوونکی پر بل باوره باندي حکم کوي نو دی د خپلو پخوانيو تجربو او خپلو ميلونو او عواطفو تر اغيز لاندي حکم کوي بله دا خبره چې انسان اکثره وخت د خپلو همو طنانو او همکارانو له خوښۍ سره برابر بر دوی باندي حکم کوي او دا ئې خوښه وي چې هغه څه دي و منل سی چې دده له رائې سره موافقت ولري .

او هغه دي و غندل سی چې دده

---

کيږي سانی الفاظو نه ورته مستعمل شوي دي .

مطلب دادی چې باختري مذهب او زموږ د بودا مذهب دواړه و ابدي قانون ته قائله دي او پابندي ئې و انسان ته لازمه ګڼي او پرم آتما يا اهرمزدا ته د مقدس معراج حيثيت ور کوي د تناسخ د مسئلې په باره کې په ژندو اوستا کې صرف دوه ځايه حوالې سوي دي يوه [٤٩'١١] يسنا کې د اروان لفظ راغلی دی چې د بېرته ستو ايدو معنی ور کوي . په [٣٠-١٠] يسنا کې بيا د زېږنې لفظ استعمال شوی دی چې د وارو وارو پيدا کېدو مفهوم په بر کې لري د باختر آريائيان هم د هند د آريائيانو په څېر سره پر څلورو طبقو باندي چې د دوی په ژبه پشتره نه وېل کېدی وېشل سوې وه د هند طبقې خو دي معلومې دي چې په برهمن، کشتري، ويش او شودر سره وېشل شوې دي د باختري وېشل سوو طبقو نومونه دادي :

١- اتهروان چې د برهمنانو په څېر سره ئې د پېشوايانو حيثيت درلودی .

٢- رتهاايشتا چې د کشتريانو په دول سره توريالیان وه .

٣- وستريا خشومنت چې د باختري د سوداګرو او کښتګرو ډله وه .

٤- هوتي ددې طبقې وظيفه د نورو دريو طبقو خدمت په دې کې هم له مذهبي قانونه سره و نو موږ دري شريفو طبقو ته د کستي (زنهار) تړلو اجازه وه مګر څلورمه طبقه ئې د ديانت له حيثه څخه له دې حقه محرومه کړې وه .

له مذهب سره مخالفت اري دا هم سته چې بو سړی د بل سړي په عقلیت باندې د کوچني او ښځې تر عقلیت ډېر پوهېږي.

٤ - دغه تر اوله پا څېنې له دوی څخه عیبونه دي چې ملاحظه کوونکی و چابك حکم نه واداره کوي او وغلطو بې فایدې نتیجو ته ئې رسوي.

دغه طریقه هم د هغو نورو د مختلفو طریقو په شان په خپل ذات کې نواقص لري او دا حاجت پیدا کیږي چې ددې طریقې د تقویت دپاره یوه بله طریقه استخدام شي نو دغه سبب و چې علماؤ د مختلفو طریقو بالغه ضروري د ګڼله په ې دول چې او رما طریقه هم ور سره ملګري کړي او او رمه طریقه (تجربه) ده.

تجربه:- د تجربې او د ملاحظې د دواړو دول په منځ کې فرق دادی چې ملاحظه که ذاتي ملاحظه ده که خارجي بېله تکلیف او تغیره څخه د طبیعي انسان او یا عادي انسان په تو لنه کې ولاس ته راوړه کیږي.

هر څه چې تجربه ده له دې څخه مراد دادی چې هغه څه چې تر ملاحظې لاندې وي ظروفو ته ئې تغیر ور کوو او له خپلې ارادې سره سم په تصرفات یکښې کوو او په تکرار و تجربو سره ئې کورو ددې دپاره چې یو خاص شی مو ولاس ته راسې او د ملاحظې سلوك په مو په هر حالت او هر ځای کې تر پام لاندې وي او هغه نتائج چې موږ ته په لاس راسي په پوره دقت به ئې ندو یمو و د تخمین په شکل به په سرسري دول نه تېرېږو نو کوم وخت که ئې د مکرر تجربو په نر خ کی یو دول نتیجه ور کړه نو به ئې موږ پر صحت باندې حکم کوو او که ئې یو دول نتیجه ور نکړه نو به ئې د اختلاف په علت پسې تلاش کوو او تر څېړنو لاندې به ئې نیسو.

د تجربو د کامیابۍ دپاره دا ضروري ده چې کوم پر چلچې ناسې تجربې کوي هغه به مساعدت ور سره کوي او صرف مقصد و حقیقت ته رسېدل دي نوری خبرې به په مینځ کې نه وي او هغه پوښتنې چې ناسې ئې ځنې کوي په جواب کې به ئې سستیت نه کوي او په زغرده به سم جوابونه در ته وائي.

هغه دقیق اسباب ونه لکه دستر یا داندازې د معلومېدو دپاره او یا د عقلي اعمالو دائر د معلومېدو دپاره په بسه جسم کې تر له د تجربې مظاهر وي او هم دار نګه د نوي علم النفس له مظاهرو څخه نوي لابراتوارونه تاسیس شوي دي چې نفسي تجربې پکښې کېږي.

بنا بر دې هغه دي چې د علم النفس تجربې د علم النفس د پسوي ځانګې حیثیت پیدا کی په امریکا او اروپا کې خاص په دغه شق کې لکه دوی چې د حیواناتو د غرائزو د معرفت دپاره تجربې کوي او معلومات اخلي چې دوی د زده کړې دپاره څونه استعدادلري او دا ور معلومه شي چې دا انسان د عقل او د حیوان د عقل په منځ کې څونه علاقه سته او د مغزو او عقلي اعمالو په منځ کې علاقه و پېژني او دحې په نفس کې او د رنځور په علاج کې څونه اثر لري.

دا هغه مختلفې طریقې وې چې د دوی په اساس په علم النفس کې وزغېدو او علماؤ دا خوښه کړېده چې ددې تولو طریقو څخه دي په ګډه کار واخیستل شي نه دا چې یوه له دوی څخه ئېنګه شي نو که موږ ددې

طریقو په اساس د کومو نتیجو ته ورسوو او کوم یا ثابت حقیقت لاس ته راوړو.

## د علم النفس شقونه

په دې اواخرو کې علم النفس دېر وسعت پیدا کړی د ژوند او عقل په ټولو اعمالو کې ئې زغېدل شروع کړه او مباحث ئې سره وغزېده او مسائل ئې پراخ سوه او پدې سبب لکه طب او هندسه غوندې دېر شقونه پیکښې راووتل او د هر شق د پاره ئې خاص خاص علماء وجه غېده او د خاصو لارو څخه هر یو عالم خپل شق تر څېړنې لاندې نیسي موږ غواړو چې په لنډ ډول د علم النفس هغه مهم شقونه دلته بیان کړو.

۱- «د عام علم النفس» دا عبارت له هغه پخوانۍ او پېژندل سوي عامه څخه دی چې د عقلي ژوند عملیاتو، متعددو مظاهرو او صورتونو په اصلي قواعدو کې بحث کوي او دغه شق چې دی اوس مستقل علم نه دی بلکه له هغو لومړنیو مبادیو څخه مرکب دی چې د داورو شقونو مبادي دي او د نورو شقونو په مخ کې د یوې مقدمې حیثیت لري.

۲- «د تطوري تجربي (الجنطیقي) علم النفس» په دې شق کې د عقلي عملیاتو او د دوی د تطور او آثارو د نشئت په باره کې د زوکړې له وخته بیا د نشوونما تر پایه پورې بحث کوي مثلاً: د ادراک تطور، په لویانو او کوچنیانو کې تر څېړنو لاندې نیسي او په دې نشئت کې ئې زغېږي چې له مجرده احساسه څخه وحسي ادراک ته رسېږي او له هغه څخه د کلیاتو وادراک ته رسېده کوي.

۳- «د کوچنیانو عام النفس (پیدولوجي) یا د کوچنیو سیکالوجي» په دې شق کې د کوچنیان او د دوی عقلي او بدني نشوونما او د دوی طبیعتونه او نفسیات یا عقلیات تر څېړنې لاندې نیول کېږي.

٤- «د بالغانو او بلوغ علم النفس (د بلوغ سیکالوجي)» په دې شق کې هم هغه مهم تغیرات بیانوي چې د بلوغ په وخت کې پر انسان باندې جاري کېږي او د بالغ خصوصیات دي او عیبونه او نواقص او د علاج طریقې ئې هم تر څېړنې لاندې نیسي.

۵- «د حیوان علم النفس (د حیوان سیکالوجي)» د حیوان عقلیات او د ده تصرفات او د عصبي جهاز دوره ئې او د حس او احساس او ادراک نشو ئې تر بحث لاندې نیسي.

٦- «د مقارن علم النفس» دغه شق اساساً د دغه د مخکنۍ شق متمم دی ځکه په دې کې د انسان او حیوان عقلیه مقارنه او پسه حیوان انساني کارونه کوي تر څېړنې لاندې نیسي.

۷- «د تعلیمي علم النفس (پداګوژي)» د تعلیم او تدریس او د درس د موادو او د عام علم النفس د قواعدو تطبیق او وسایل د تربیې او تعلیم په ساحه کې تر څېړنو لاندې نیسي.

۸- «د صناعي علم النفس» د کارګر په عقلیت او عقلي عملیاتو او هر کارونو کې چې په مختلفو صنعتونو کې په کار اچوي او هڅه چې د کار او کاریګر له شمېرانو څخه دې پرزغیږي.

۸- «د جمالي علم النفس (د جمال سیکالوجي)» دغه طریقې تزئین او جمال ښيي او دا بیانوي چې مظاهر د جمال او د خلکو په نفسو کې تاثیر ترکومې

اندازې دي .

۱۰ - «اجتماعي علم النفس» په طبیعت کې د اجتماع او په تکوین کې او هغه څه چې انسان ددې قابل ګرزوي چې په ټولنه کې د ژوند صلاحیت پیدا کړي او دده اثر او تأثیر په جامعه کې تر څېړنې لاندې نیسي .

۱۱ - «د شواذو علم النفس» د شواذو په عقلیت کې بحث کوي چې په شواذو کې نو لېونیان نوابغ ، داخل او همدارنګه د عقلي عملیاتو هغه نادرې برخې او عجیب تصرفات تر څېړنې لاندې نیسي .

۱۲ - «د افرادو علم النفس» (فردي سیکالوجي) فردي سیکالوجي په هغو صفاتو کې ږغیږي چې هر فرد له بل څخه جلا کوي او ددغه د معاملې او تربیې او تعلیم د طریقې او دده د خاص طبیعت په باره کې ږغیږي .

۱۳ - «تجربوي علم النفس» مقصد ئې د تجربو کول دي او د آلاتو استعمالول او د عامو نفسي قواعدو د تصحیح دپاره او د نظري امورو د تثبیت دپاره په علمي قواعدو سره هغه عملي طریقې تر څېړنې لاندې نیسي او په تجربو کې ئې ږغیږي .

۱۴ - «تطبیقي علم النفس» په دې شق کې د علم النفس د نتائجو پر تطبیق باندې ږغیږي په عملي ژوند کې لکه : خرڅلاو رانیول او اعلانول .

۱۵ - «تحلیلي علم النفس» دا شق ودرو شقو ته وېشل کېږي یو ئې هغه تحلیلي شق دی چې د شعور او عقلي ژوند او عقلي عملیاتو په تحلیل کې بحث کوي دوهم ئې نسوي شق دی چې [یونج] را ایستلی دی او د خلګو شخصیتونه ددوی مزاجونه او نفسیات او د دوی وېشلي وظائفو ته چې هره طائفه خاصه خواص او مشخصات لري .

۱۶ - «لاشعوري علم النفس» باطني عقل د لاشعوري مظاهرو او عملیات او د خلګو په تصرفاتو ئې تأثیر تر بحث لاندې نیسي .

۱۷ - «علم النفس اشخاص بطبائع الامراض» (پاتولوجي سیکالوجي) په دې شق کې عصبي وظیفوي أمراض او ددوی عقلي اغراض او نفسي او هغه اساسي علاج په تنویم یا تأثیر سره تر بحث لاندې نیسي .

۱۸ - «د نفسي تحلیل علم» د اعصابو وظیفوي امراض بیانوي او ددوی علاج د افکارو په تحلیل سره او تداعي معاني سره او د خوبونو په تفسیر سره پر اساس د [فروید] او دده د پیروانو .

۱۹ - «اجرامي علم النفس» جریمه او د هغې ظروف او د مجرم روحیه او د واقع جرم او د علاج لارې ئې بیانوي .

هر شق له دغو شقونو څخه بیا نورو موضوعاتو ته وېشل کېږي . «پای»

# پخې خبرې

**[د هیواد لوړتیا]**

د یوه هیواد لوړتیا او پرمختګ د عایداتو په ډېروالي ده نه ئې د کلاوو په لوړوالي او ټینګوالي او نه ئې د مانیو په لوړوالي او ښکلا سره ده بلکه لوړتیا او پرمختګ ئې د ښه روزل سوو فاضلو او با اخلاقو وګړو د ډېروالي دی چې حقیقي قوت او قدرت او واقعي عظمت ئې تشکیلوي . [مارتین لوتر]

**[د هیواد لوی‌والی]**

د یوه هیواد لوی‌والی او عظمت ئې د خاورې او مځکې په ارتوالي سره اړه نه لري بلکه د اوسېدونکو په اخلاقو او روحیاتو ئې اړه لري . [کلبر]

# بشري آینده

ښاغلی محمد انور [نومیالی]

اوسنی بشریت خو اوس مرو یو ثانیه وروسته یا دقیقه وروسته یا ګړی وروسته یا زر کاله وروسته د یوې آیندې خاوندی او د دې آیندې د سرنوشت په تاکلو کې د دوه عامله تر کښتنی لاندی راځي چې اومړی د طبیعت له خوا ځنې، او دوهم په خپله د بشریت له خوا ځنې، ګڼل کېږي.

هغه سرنوشت چې د عالمي تکوین فیزیکي جریان د بشریت سره ور رهی دی د هغه د مشاهدې دپاره خو د انسان له پلوه ځنې داسې وسائل نه دي کشف شوي چې د دې د توله تکوین پر رانلونکي سرنوشت خبر کړي او نه انسان ته ورمعلومه ده، چې تر څو پوري به دا د ځمکې کره د تکوین په غېږ کې دده د ژوند د چلاو دپاره ګرځېدلی اری. په دې باب کې بېخي لږ علمي تخمینات شته او په عملي صورت چې څه شوي دي هغه دا چې په مدني ناحیو کې ځلېږو پښت ګرېږه تر مخ د یوه محدود اقلیم جزی ارضاع او یا د محسوسي زلزلې پېښېدنې تر پېښوي محدودی اندازې پوري کېدلای سي. نور نو د انسان د پوهنې په مخ کې پوه تور مجهول دغه چې دده موجودیت پېکښې احاطه شویدی.

اوس نه ده معلومه چې تکوینې تغیرات به د بشریت ژوند او مرګ له کومو سرنوشتونو سره مخامخ کړي. لېکن د هغه انکشافي مجادلې په نرخ کې چې انسان ئې د طبیعت له موادو سره کوي دا خبره هم شامله ده چې اوس مرو تن او یا انسان د خپلې آیندې په باب کې د خپلې پوهنې او کړنې و احاطې ته توسعه ور کوي او د بشر د نورو انکشافاتو په اساس داو بللای شو چې داسې معماوي او موضوعات هم د حل او کشف تر چوکاټ د باندې نه ګڼل کېږي. د اوس د پاره البته دا ترتیب ښه دی چې سړی داسې خبری علمي مجهولات وبولي او لکه د نورو علمي مجهولاتو په باره کې چې موږ د علم په اساس د مثبت یا منفي قاطع حکم اجازه نلرو، همدغه رنګه داسې مسائل هغه مجهولات دي چې فیصلې ئې د آینده و لا برانوا- روته ورپاته دی. خو په دې باب کې یو نږدې تصورات روادي چې فلاسفه خپلې دماغ آزمائي پر وکړي.

را به سو هغې آیندې ته چې انسان ئې د خپلو حیاتي نشئتاتو په سلسله کې په خپله د ځان دپاره تاکي. په دې کښته کې دوه غټ سوالونه و مخ ته راځي چې یو د صلح او بل د جنګ دی. هغه آینده چې د جنګ په جریان کې ئې تصور کېږي او جنګ ئې سرنوشت ورتاکي نو د هغو اطلاعاتو په رڼا کې چې اوس د تخریبي قواو په باب په دنیا کې خپرېږي دا خبره کېدلای سي چې د دې جنګ تخریبات به وازي هغه وخت تر

حساب لاندې راتللای شي چې دا
جنګ وبای ته ور سېږي. په
هر صورت دا آینده ډېره
اندېښنه آینده ده او تر هر څه
چې کېږي باید ددې آینده
مخ ونیول شي. ددې آینده
کې وحشتونه، اوږې، ناامیدۍ
حرمانونه، ماندې او نور دا ډول
مصائب تصور کېږي او داسې ښکاره
دغه چا دپاره ډېره مشکله
ده چې تر جنګ وروسته پاتې
وي او د او ښې مدنیتو ستري
عیاشۍ ئې هم لیدلې وي. دا په
تو اټکل ورکوي چې ځان ددې
جنګ په لمبو کې وسوځي او
آینده ته ورپاتې نه شي، لیکن
سره له دې هم د بشر د تېرو جنګو
له مخې چې کوم قیاس کېدلای
شي دغه عالمي تخریب به د بشر
د عالمي تعمیر په سلسله کې یو
ستر رول ولوبوي.

راشو هغې آینده ته چې
صلح ئې سرنوشت ټاکي. هغه
قوانین چې د بشر تېر تاریخ
ئې اداره کړېدی تر ډېره حده
موږ ته د بشر آینده راښوولای
شي. ددې قوانینو له مخې موږ
پوهېږو چې اقتصادیات، اجتماعیات او نور د بشري ژوند عضوي
او غیر عضوي جریانات د کومو
اصولو په چوکاټ کې پر کومه
خوا روان دي او څه ډول نتائج
په ژوند کې پرېښا کېږي. دا
آینده د ژوند او پوهنې له خوا
څنګه ډېره ځلانده ده او پر
حیاتي مشکلاتو باندې د انسان
کافي تسلط په ښکاره معلومېږي.
ددې آینده کې د ژوند مادي
شرائط ډېر انکشاف کوي او
له هغه سره سم د سائنس او تخنیک
انکشاف هم تړلی دی او له دې
سره د ذهن انکشاف هم لازم
دی او له دې ګردو سره د ژوند
جریان مخ پر بله خوا اړوي
او ددې جریان ماهیت ور بدلوي
چې اوس د ناپایو تضادونو په
منګلو کې ګیر دی. ددې
آینده هغه اېږي منظرې دادي
چې بشري دنیا تر یوې اداري
لاندې راتلونکې ده او د
مواصلاتو موجوده ترقي دغه
کار هم ممکن او هم لازم
ګرځولی دی.

په دنیا کې د انسان محیط
محدودیت له لاسه ورکوي او
په لایتناهي الیشیږي. د هرې
تولیدي او تخلیقي عملیې په مخ
کې چې څه موانع درېږي هغه
له مابینه ځځ ځي او بلکه د
محرکو عواملو ته ځای ور
پرېږدي. نور نو انسان پخپله
د ځان مالک ګرځي او ګرځي
به ګړې به ددې ساحه کې خپل
انکشاف ته سرعت ورکوي.

داسې صلح چې د بشر آینده
ددې ډول سره تامین کړي
البته یو داسې مشکل کار
معلومېږي چې ښځې و تامه ممکن
نه ښکارېږي دی. یوازې له
اخلاقي موعظو او خیالي
افسانو څخه باید دا امید ونه
وساتل شي چې له تضادو څخه ډک
جریانونه به موږ د خوښې پر
لار باندې سم کړي بلکه د
معاصرې فلسفې په حکم ددې
کار دپاره د مادي شرائطو
تهیه کول او مرئي شرط ګڼل
کېږي. د دنیا د مادي نښتې
غرقي او له هغه څخه را وتلی
دروحیاتي نښتې غوټۍ د قومونو
ترمنځ، د اسلوبونو ترمنځ، د
واسونو ترمنځ، د دولتونو
ترمنځ او د سیستمونو ترمنځ
یوازې د یو ستر تعمیري
قوت په منځ ته راتلو سره
د تاریخي دیالیکتیک پر
اساس خلاصېدای شي.

وګورو چې دا قوت به کله په
دنیا کې د خپلې استفادې فتح
اعلامیه خپره کړي.

د تاریخ یوه پاڼه — بناغلی «سربن»

# عیسی خان
## یو زړور پښتون

عیسی خان د هغه زړور پښتون نوم دی چې د بنګال خلګو ئې سره د دروشلو رسوو کالو تېرېدلو لا نوم نه دی هېر کړی هغه وخت چې ددې بهادر په زړه کې د بنګال د نیوالو حس پیدا شو نو ددې مقصد له پاره ئې د ډېر لښکر غونډ او راجه کرچ بهار ته ئې د جنګ اعلان ورکی نو مړدی راجا ته چې د مخه لا دده د ډېر اتلاو زړه ورتوب معلوم ؤ نو بېله تکره یو شخه ئې میدان ورپرېښووی او وېوې نامعلومې خوا ته وتښتېدی، مګر اکبر چې ئې په یاغی توب خبر شو فوراً ئې سپه سالار مان سنګه نومی ومقابلې ته ورواستاوه د بادی تر هغې کلا چې ده لښکر پکښې تول کړی ؤ د جنګ میدان جوړ شو. بدغه ورځ چې جنګ ونښتی خورا ډېری وینې توی شوې د ماښام مهال ته اژدې عیسی خان و مان- سنګه ته د یو په یو جنګ پیغام واستاوه او ورته وې ویل: چې زیاتی تو د خلګو وینې څله ایله تویېږي راځه در شه چې پر میدان ئې زه او ته سره معلومه کو، ددې جنګ خاتمه به یا زما په او ښو سره وی یا ستا.

مان سنګه چې دا خبره واورېدله د یوازې مقابلې کولو توان ئې په ځان کې و نه لیدی نو خپل زوم چې تر ځان ئې دلاوره او غښتلی بالا و مقابلې ته ئې ورواستاوه، د عیسی خان قوت ته چې نو مړدی سړی څه څخه تله معلومېدی پوره ئې کړه له داګه ئې را و پرېشتوه، مان سنګه چې خپل زوم پداسې بدحال کې ولیدی نو مجبوره شو میدان ته پخپله راولوېدی، عیسی خان چې مان سنګه ولیدی له آسه څخه کښته شو او د هغه وخوا ته رهی شو ده لا څو ګامه نه وه اخیستي چې د مان سنګه ماندینه ئې په پښو کې ورولوېده او دعذرخواهی پلو به ئې دوری هیسته ورته ګرزاوه ویل به ئې ای! عیسی خانه د خدای روی و ګوره زما مېړه د ماتی په حال کې د بلی ته مه استوه حتماً ئې شاه وژنی زما او د عیال خاوری په سر کېږی. عیسی خان چې ننګیالی پښتون ؤ او پښتانه چې د سر دښمن په عاجزی او عذرخواهی راسی تر ګناه ورتېرېږي نو ئې د مجبوری د مخې د هغې عجزې د پلو له خاطره څخه ځان د مان سنګه لښکر ته تسلیم کړ او د پلی نه ورسره ولاړی، اکبر چې ولیدی فوراً ئې د بند حکم پرې وکړ مګر په پای کې چې ئې دده د بهادری او دا ډول مېړانی کیفیت واورېدی دستی ئې ایله او بیرته ئې د بنګال حاکم وټاکی تر څو کالو ئې عادلانه حکومت کوا او وروسته مړ شو، پسله ده څخه ئې ماندینې سونا بی بی نومې د حکومت د نظم و نسق واګې په خپل لاس کې را خیستلي.

ښاغلی محمدګل [مومند]

# مېرمن ملاله وایی

وخت چې راغی د پښتو د نوم او ننګ
پښتنه وم ځان مې سور کړ په فرنګ
چې پښتون وی او مړه وی څنګه کاندی
د ظالم غدار انګریز له جنګه څنګ

په میوند کې شهیدان دی زموږ کام
ټول مټ شوی د پښتو په ننګ او نام
هېر ئې نه کړی ای ځلمیانو کوی پام
انتـقام او انتـقام او انتـقام

ځان موچار کړ د پښتو او د دین په ننګه
هغه وخت ؤ پهموږ پاندی ډېر تنګه
سرک مو ور کړ د پیرنګ په خوله کې داسې
چې بیا خپله استېدو ونه کړی هاسې

پادي دا ګک کې شهیدان دی د پرهر ګوره
مه نېر پېږه د پر نایام شاوخوا ګوره
په احتیاط سره پل کښېږده د پر پام وکړه
تر پلو لاندی شهیدان ناآرام مه کړه

ښاغلی گل پاچا «الفت»

# آزادي

شهرت د عقل له نامه د افلاطونه نه ځي
د آزادۍ مینه هیڅکله د پښتونه نه ځي

که هر څه لاړ شي له زړې دهر او جهانه نه ځي
د بل تر جوغ لاندې ژوندي وي بس ملتونه نه ځي

د آزادۍ معراج ته نه رسیږي هغه کسان
چې د غیرت او ننگ په لار کې ئې سرونه نه ځي

په نوره بانډې چې مړ شي څوک ئې نه پېژني
داسې مزار ته پښتني ملالې جونه نه ځي

سر و مال ځي د عشق په لار کې خاورې کیږي زړونه
د لیلی مینه پس له مرگه د مجنونه نه ځي

---

## د غریب آواز

خدایه ستا په رنگ جهان کې - چې ودانې بنگلې دي
د معمار د لاس ننداکې - د مزدور تودې خولې دي

دا په بڼ کې چې گلونه بهارونه ترې سازیږي
د باغوان دزړه په وینو - آبیاري هومې غوړیږي

مگر واك د بوټیدونې به نصیب د باغوان نشته
د غریب سرې تاتوبی ستا پر مځکه آسمان نشته
«زشاد»

---

## رباعي

اې که شمع که ځان وسیزې په اور ته
که د باد په شان دې ځان کړه سرگردانه
نو به هله کړې رڼا مینه او کور ته
نو به وچې کړې خولې له مخ دوروره
«الفت»

ښاغلی عبدالشکور [رشاد]

# د ننګالیو هوډه

بوي جګي «۱» محمود نه وي په ماندو چيغو
غبرګ زامن له ما بندي بونلله مغو «۲»

زه ئي سوځمه په اور د بېلتانه کې
سري سکروټې ګلوم په لېمانه کې

که [illegible]اندو غوښو اور اخيستلی سلطانه
زما لمبې به دي ايدلای تر آسمانه

هر زګېروی مې د وېرژلي زړه نوحه ده
هر سوېلی مې د سېځلي زړه لمبه ده

هره کرږه مې له اوره ډك داستان دی
هره کوکه مې د خولې سوی ارمان دی

هره اوښکه چې له سترګو څاڅي ګښته
د داد لاس اچوي ستا وګرېوانه ته

ننګوي له هغه ظلمه څخه داستان ستا
چې کاوه پر رعیت شي په دوران ستا

چې سلیمان د ښاپېرو دلنوازي کا
نور دېبان به ئي پرمېنه پادشاهي کا

چې ئي سترګې دشپانه وي خوب نه ابلي
ولیوانو نه دي ځان وسپاري غېلي

نه پخپل عیشو عشرت اوسه مغروره
د بلا که زه پر غبرګو شمه بوره

---

«۱» جګ: د جیم په سکون و ښځي ته وائي .

«۲» مغ: د میم په ضمه آتش پرست .

کله دی نه کړی راڅانه دژوند سختی
والله کاږم در پسې د غزنی شنختی

نوری خاوری به پر سر بادوم هرو نه
د سرتاج به دی پیری غوارمه پښو ته

له آهو او به اور واخلم په غزنی ستا
دربوم به په سرو اوښکو پادشاهی ستا

[سلطان] جام وغورځاوه وي ادي موری!
دا اوبه به نرحلق تیری نه کړم نوری

خوږی اه کړي پرظالمو هیڅ دی پوری
با مې نه ووازېدی به وصال حوری

با مې تالره رانه وسټل زامن بیا
با مې ستا په لاس دراته کا ستا دښمن بیا

صدقه شه تاجونخت پرموشاهی زما
دمظلوم تربوه اوښکه درست غزنی زما

سمدستي ورغږېدل د جنګ دواونه
د مغلو پر خوا لېږدېدل فوجونه

د ظالمو د واک مزی ئې وریړي کا
په دمغلو ئې زړه سور دعفي چګی کا

چې ئې وسپارل زامن مظلومې مور ته
مخ ئې هاله واړاوه د ساقی اور ته
هله راکه د سرو اوبو یو جام
دا سپېږ عیاشتی ئې یو غرپ پرما حرام

[ دا قصة د عصامی له شهنامې څخه اخیستنه شرېده ]

## (د زړه اوښکه)

ښاغلی
محمد صدیق
[پسرلی]

کبلۍ وه د بیدیا به ورشو گانو څرېده
که ستر گه د سبا وه په افق کی ځلېده
کباب به وه چی ستر گو ئی له ستر گو کاوه رم
په ستر گه وه چی ستر گه ئی له بریښنا بریښېده
یا ځلنده سپوږمۍ وه چی لیمۍ ئی نیټولی
یا تر هنده هوسۍ وه چی له ستر گو رمېده
غوټۍ به د شبو وه به گلشن کی غوړېدلی
روڼۍ به وه په ننده به د چا را څرېده
روڼۍ هم نه وه چیرته په بوښکلی ښاپېری وه
تنها به په داده زړ گی په سین کی لمبېده
مغروره غوندی پېغله وه د نوری کیږدۍ خوانه
مسروره شانته ناوی له کږ کیو ښکارېده
پېغله وه کوچۍ وه - کوچ اوبارته ناقراره
یا کومه نازولی وه له خوبه ویښېده
یا لنګ ئی ؤ بوښلی غزونی بی کولی
دلمر سپینو وړانګو ته ئکه واوره ویلېده
آینه د سکندر به وه حیرانه تن سبا ته
چینه به وه د غرونو چی له برخو خوټېده
بوازی به وه پاته له قطاره سپینه بطه
ډیوه به وه د کوم شهید په خاك به بلېده
ملکه د رحمت به وه له عرشه به راتله
درخه به وه آدم سره به بقه نښتېده
نه هغه وه نه دغه بلکه ستا په تصور کی
زما د زړ گی اوښکه وه له ستر گو څڅېده

ښاغلی [پالوال]

## شهو!!!

نوره شپه د غم روڼا شي، چې تا مول وهلی وي
لکه سپېږمۍ چې داسمان په مخ کې شپول وهلی وي

پردې به غاښ یار خوړي خال ایښې له خیاله نجلۍ!
که پدې زلفوله شوخۍ ور باندې ګول وهلی وي

دا ستا بربت باندې بورېږم له آینه څخه
نه چې ښایست دی په سایه دزرو پسول وهلی وي

دادي په پښو کې دسرو میو کټوري اوښتي
که یې خندګله پدې دیار د زړه کچکول وهلی وي

ستاد پېکي ترسیوري لاندې چې څوك زړه بیدوي
لکه شین خال دی پرزړه دمینې چول وهلی وي

دخیرل سوي ګرېوانه سینه په اوښکو زخمي
نه وا زلۍ په پرزنګي باندې غاټول وهلی وي

ستاد چنډنې تر وني لاندې مګر قبر کې جوړ
په بتخانه کې چې یار ستا د وصال بول وهلی وي

په مینتوب کې چې لمبه دلېونتوب نه وي، هیڅ
«پالوال» په خوشي محبت دهوښ په تول وهلی وي

---

## د پردېسانو زغ

اوربخو! درومي د وطن خوا ته
سلام مې یوسی ورته چا ته

چې زړه ئې دك دی زما له یاده
سترګی کښې دي زما وخوا ته

«رشاد»

ښاغلي ويران

## زموږ لېکوال او شاعران



## ښاغلی مولوي محمد اويس کاکړ

ښاغلی مولوي محمد اويس د کاکړ د ملا محمد نور زوی د ملا دين محمد لمسی په خټه مندو خيل کاکړ دی، سن ئې د ٥٦ کالو په شا و خوا کې معلومېږي، د ځوانۍ بشاشت او تازه ګي ئې د سن د پر والی نه ده ورضايع کړي په ښه ځوان او د پر زړکړه دی، نو ږ نيکه ګان ئې د پښين څخه کندهار ته راغلي دي بخپله او موږ دی په دغه کندهار کې زوکړی او لوی سوی دی.

هغه وخت چې بدې سيمه کې تراس ته بالا لېکوال نه وه، د ښاغلي مولوي محمد اويس کاکړ ډېرې مقالې او منثور و منظوم آثار په طلوع افغان او د هغه وخت [پښتو] مجله کې چاپ او خپاره سوي دي

دا مضامين به ډېر څله پر عصري معلوماتو او ډېرو ګټورو مطالبو بناوه مثلاً دا يې ګنو موضوعاتو به ئې اکثراً تجارتي او اقتصادي جنبه در اوده چې د نوو او عصري معلوماتو څخه به ډك او د خلګو به ورځنی ضرورت هم ورته ؤ دا به ئې په خپله مرزنی ژبه پښتو لېکلي وه. ادبي مضامين ئې هم خلګو ته قابل.

مولوي صاحب په خپلو ملګرو کې د يوه عالم او ښه فکر د ښتن په توګه ښه پېژندل سوي دی او موږ دی پرته د خپلې ژبې [پښتو] څخه په پارسي کې هم نکړه دی، ځکه چې دوی ډېر عمر څه د کندهار د تجارتي موسساتو د نمايندې په توګه او څه د خپل تجارتي جريان په موقع کې په هند کې تېر کړی دی نو په انګليسي او اردو هم ښه پوهېږي.

مولوي صاحب لومړني تعليمات په ښار ځای کې او څه نور تحصيلات ئې به خصوصي دول کړي دي. له دې وروسته ئې څه وخت معلمي کړېده، ددې شغل په وروسته ځر ندګه چې تجارت ئې بلارنی کسب او بخپله د دوی هم ورته ميل ؤ نو بدې پېشه ئې لاس پورې کړی دی. بدې سلسله کې چې ئې به تجارتي موسساتو کې مامورېتونه او نمايندګي کړي وي ښې تجربې ئې هم درلودې چې د خپل شخصي تجارت دپاره ئې دا او په مرسته سره علاوه پردې کله چې په کندهار کې يو ادبي انجمن تشکيل ؤ نو ښاغلي مولوي محمد اويس ئې په غړيتوب کې هم برخه درلوده او څرنګه چې د دوی ورسره ملګري کړېده مرسته ئې ورسره کول.

نو موږ دی اوس هم په تجارت لګيا او بدې کار کې

کې ددوی کور نیه دخلکو په اصطلاح «دبېي معامله‌دارۍ په‌وجه» د نامه څښتنان او په کندهار کې په ټولو خلکو سره شهرت لري .

د مولوي صاحب له‌ډېر وخت راهیسي په جراندو کې لیکني نه وینو خو په پښتو ادبي اثارو کې ئې قصیدې، او ډېر ادبي اقسام موندلای شو نوموړي پدې نرخ کې کله کله ظرافت هم اري مثلاً :

کومو دوستانو او ملګرو ته چې اوس هم خطلیکي څه‌داسې عبارتونه پکښي موجود وي چې په ویلو سره ئې سړي باید پوآن وخاندي .

لاندې یو نظم ئې د پښتو ادبي اثارو څخه دی :-

و مسلمان ورور ته آخر تېره ازغی پرڅه سوي
داسې بې ننګه او ناسیال غواړې ځلمی پرڅه سوي

زه‌اوته دواړه‌خدای یوشی کړو دادخدای تعلیم دی
په ځوروېو، څوور ځوجانه ته‌لېونی پرڅه سوي

زه دی د ورور په‌شان په‌زړه کې محبت لرمه
ته‌د دښمن په‌شان پسمن او کوږ مزغی پرڅه سوي

د مسلمان خاصه اخلاق دي دانسان د الفت
ستا نه اخلاق ستته، نه‌الفت داسې‌سړی پرڅه سوي

الله‌دی‌شرف دسخاوت‌ستة نه‌دی‌زړه دی سوزان
آزار ته جوړ غښی په‌شانکه شکني پرڅه سوي

«داویسه» بل‌ته چې‌خطاب کړي ځان دی ولې‌هېر دی
وخپل مالك نه‌شوي طاغی د نفس مزبی پرڅه سوي

## دلویانو خوږې خبرې

### جسارت

جسارت بېله‌ نعقل څخه‌ خطرناك دی او نعقل بېله‌ جسارت څخه‌ بې ګټی . که‌ یو سلیم فکر زموږد ارادې لارښوونه‌ ونه کړي، کوښښ او اقدام زموږ به‌ درد نه‌ خوري . [ګوستاولوبون]

درد بر ځان ورل نرمړ کېدلو د بر جرئت او جسارت غواړي . [ناپلیون]

بې‌زړه او بېرو بدونکی خلك بې‌رحمه‌دي، لېکن زړه ور خلك مړانه او ځوانمردي خوښه‌لري او وافرادو ته‌ د نجات ور کولو څخه‌خوښ کېږي . [ګی]

ښاغلی م . [عطائي]

# د ادبياتو پر عمومي سير يو نظر

څرنګه چې نن د نړۍ په ټولو جريانانو کې ښکاره تغير راغلی او د نوي عصر انسانانو ددې تحول په رڼا کې د ژوندانه بېلې، بېلې برخې تغير کړې دي نو په هغو کې ادبيات هم بې برخې پاته نه دي .

ادبياتو چې د انسانانو په اجتماعي سير کې له ډېرو پخوا زمانو څخه په بېل، بېل شکل د بشري ژوندانه پر يو پر کيفيت برخه احاطه کړېده نو د يو شمېر پېړيو په دوران کې ئې د تحول هغه مدارج چه لوړ دوالي کړي دي چې د پروني او ننني ادبياتو په مقايسه کې موږ بايد د پروني اوښ او ننني راکټ د چټکۍ مثال راوړو .

د انسانانو هغو لومړنيو ټولنو چې فکر ئې لا ښه انکشاف نه ؤ کړی په ادبياتو کې هغه لار اخستې ده چې نن ئې موږ څېړنې آثار مطالعه کوو يو ځای ددوی غمجنې او تراژدي صحنې رانه څرګندوي .

تر دې وروسته چې انساني قوت د څېړنو وسايلو په کشف مخ ته ولاړ او د ټولنو مقتدرو خلګو د جامعې واګې په لاس کې ونيولې نو ادبياتو هم له دې سره سم تغير وخوړ .

د هدايت د دورې له شروع سره ادبيات د يوې خاصې موضوع په حيث تر پالنې لاندې و نيول شول خو له دې سره سم مذهبي سلطې هغه تر خپل تاثير لاندې راوستل مګر د انسانانو د اجتماعي او فکري انکشاف څخه چې ادبيات مخ پر تحول روان وه نو هغو سلطو ژر خپل واک له لاسه ورکړ .

په مدني ټولنو کې تر يونان او روم وروسته تر پروني نړۍ د عربي ادب سلطه خپره شوه د عربي ليکوالو او ادب پالونکو په ادبي نړۍ کې ډېر علمي او هنري ابتکارات وکړه چې د دوی هغه ابتکارات په وروستنيو مترقي ټولنو کې د ادبي اساساتو په حيث اړي

[ګوتنبرګ او شوارتز] په نړۍ د ول د چاپ پر اختراع موفق شول او له دې سره سم نو د ادبياتو په تعميم کې لوی ګام واخيستل شول که څه هم لومړی په دې وسيله د کليسا ليکنې چاپېدلې خو د نوي دورې خلګو په لږ زمانه کې هغه چاپخانې د خپلې استفادې لپاره په کار واچولې .

د رنسانس د دورې له ليکوالو څخه چې د ادبياتو په تغير کې لومړی سړی بايد وبلل شي هغه [اراسم] دی، دده مشهور اثر [د لېونتوب مدح] چې په کلکه هجوه ليکل شوی ؤ د کليسائي ادبياتو مباني ئې ولړزوله ددې اثر قوت په هغو ادبياتو کې نغښتل شوی ؤ چې د جامعې د ټيټو طبقاتو له عکس العمل څخه ئې سرچشمه اخيستله په دې وخت کې د اروپا د ټولو مدني مرکزو لوی ليکوالان پدې تلاش کې وه چې د دغو طبقاتو د تنو برلا پاره

دیو ادبي مسلك په لار ښوونه کې کار شروع کړي.

کرمه‌لار چې دوی دهغه ادبي مسلك دپاره پیدا کړه اوهغه دجامعې دطبقاتو ذوق او میل و اجتماعي مفکورینو د علمي مطالعاتو پر اساس دا خبره ثابته کړه چې عوام ځانونه ناوېښي نو لومړی باید دوی ته پوهیندار و ور ښکاره شي چې ځان وپېژني او دا کار باید دهغو لیکوالو پر لاس انجام شي چې دوی د عوامو روحیات پېژني.

لیکوالو چې دعوامو روحیات مطالعه کړه نو ددوی دمفاسدو د رفع له پاره ئې د پخوانیو افسانو په‌ډول ځینې قصې ور ته جوړې کړې چې په هغو کې هر فرد دټولنې په مقابل کې ځان ښه لیدلای شوای په‌دې قصو کې دوی ډېر کوښښ کاوه چې پېګانه شیان خلکو ته ورښکاره نسي او پوالځې دده پر ماحول هغومره و ګرزي څومرې چې دجامعې د فرد بصیرت ئې قبلوي.

دا نوې قصې چې له پخوانیو هماتو څخه پسا کې وې اود واقعیت پر روح ئې مدار درلود [ناولونه] و بلل شول.

دالهلال له‌عربي مجلې څخه
د ښاغلي [نجیب] ژباړه

# په‌ادب کی رشتیا

هغه ادیب موفق دی چې د لوړمثل تصویر په واقعي صورت سره ښکاره کړي په‌عربي‌ادب کې دا‌مثل دی [ هرڅومره چې په شعر کی درواغ ډېر کړه وی هغومره خوندور دی ] ابن رشیق قیرواني وائي: دا دشعر فضیلت دی چې په درواغو کې ئې سره له قبحي حسن ډېر دی همدغه سبب دی چې د ادب په کتابو کی موږ داسې اشعار ډېر میندلای شو چې په هغه کی د شاعرانو له طرفه څخه بخیل موقف کی له‌مبالغو څخه کار اخیست شوی وی لکه څنګه چې د ابی نواس متنبي او نورو ستړو شاعرانو غزلی له‌مجسمو او په زده‌پورو دلیلو څخه ګڼل کېږي.

پرهری مبالغې باندی ددرواغو حکم هم نشی کېدای او نه له پوه سره څخه رشتیا ګڼلی کېږي دممدوح د زړورتوب په تشبه کی چې له زمري سره وشي مداح شاعر درواغجن نه بلل کېږي او که‌ئې دیوه د ننګر عاشق په‌وصف کی غیر له آواز څخه د نه لیدل کېدلو مبالغه وکړه هم د درواغجن نسبت باید ورته ونشي دا چې پو بخیل ممدوح له فیاضي او ربځي ښکلي عاشق دغاټې نومبنی له غاشې اوجبون انسان له‌زمري سره تشبه کړي بدې مبالغه کې سراسر درواغجن دی او په‌عین حال کې د ممدوح سپکتوب ځینې مرادیږي.

بل و شاعرانو ته ددرواغجنتوب ګوته له‌دې حیثه څخه نه‌ایوله کېږي چې دوی و ځانو ته د لویو عملو دنسبت مدعیان دی او ددا سې‌مزاعمو ګمان کونکی دی چې وحقیقت ارہ هیڅ سند نلري پو وار چې ئې له‌چا څخه ښاراغله یعنې څه‌ئې ور کړه نو په ښو سره ئې د آسمان کنګرونه خېژوي. که ئې ور نه کړه نو ئې په بدو سره تحت الثری ته شپوه کوي و نسب

# نــــــوی
# نسل

له مځکې نه بخار پورته شو ،
له بخار نــه وريځ جوړه
شــوه .
له وريځې څخه بــاران
و اوريــده .
له باران څخه د بـرلي ګلان
پيدا شول .
لــه ګلو څخه خــوشبوئي
پيداشوه .
وګوريء مور يا پلار اوزوي
څومره فــرق لــري؟ دغــه
تفاوت چې د باران او ګلانو
يا مځکې او بـوټـو ترمنځ
وينئ‌ء د پــوه او پــل نسل
تفاوت همدومــره دی .
که اولادونه دميندو غونډی
وای له غرونه به لاسونه نه
پيدا کېدل .
له دريابونه به ملغلری نه راوتلې
له ابشار نه به بريښنا نه راتله
د رونډو اولادونه بــه راوده
ؤ ، له کنډو به کانه زېږېدل
اوس پــوه شوی چې نــوی
نسل او زوړ نسل يـو رنګ
نه وی .
که ناسي خپل زامن زوی نه
زړه بودې پــه نکاح کړی
يا خپله بېغله اور انيا ګلان
بودا تــه ورکــړيء له خپل
اولاد ســره د ښمــنــی
کړيء .
زړه تر بهار نوي نسل همدغسی
وګڼئ‌ء .                              «الفت»

ته ئې پول پول عيوب تراشي او
حتی پرحرم ئې لاتعرض کوی .
د داسې کسانو په شان کې پاك
خدای [ج] پــه قرآن شريف
کې داسې فــرمايلي دی:-
«والشعراء يتبعهم الغاوون ألم
تر أنهم فی کل واد يهيمون وانهم
يقولون مالا يفعلون » .
د شاعرانو د قلم ميل پــه اکثرو
مواردو کې د مــدحي او يا
هجوی رخوا ته دړوی همدغه
سبب دی چې وائي [ د شعر
ښکلي تورب پــه هغه وخت کې
دی چې د غلــوی نسبت ئې و
مبالغې ته وشي] حال دا چې د
شعر د ښه توب او بدتوب د معيار
په نا کلو کې دا يو ناقص تصور
دی [ وردسورث پــه همدغه
اساس سره شعر هغه حق ګڼي
چې ژوانــدی شعور و زړه ته
نقلوی][رسکن] بيا وائي:-
[ شعر د لوړو عواطفو ابراز دی
د خيال له لاری څخه] د پورتنيو
دوليکوالو نظرئې نه يوازی
د شعر بلکه د ادب د تولو شقوقو
په حق کې جامعی بلل کېږی
د اديب رسالت عيناً دفيلسوف
د رسالت پــه څير سره دی خو
صرف د دوی پــه ميانځ کې
هومره توپير ايدل کېږی چې
يو ئې د حقيقت ښکاره کول
د منطقو له لاری څخه کوی ، او
بل ئې د خيال له لاری څخه
په دې ځای کې بيا ادب پر دوو
عمده ؤ ښاخو باندی وېشل کېږی
چې يو ئې د سياسي ادب او بل
ئې د قومي ادب په نامه سره
يادېږی چې ونذکر ته ئې به دې
ځای کې ضــرورت نشته خو
اندې دا چې ادب يا شعر و شاعری
په خپل ځان کې هيڅ عيب نه لری
خو صرف د شخص اديب يا شاعر
استعمال يا يد په دغه مورد کې
مد نظار ونيسو .

په تېره ګڼه کې [د دمراسي غونډۍ] تر سرخط لاندې د ښاغلي کهزاد یو مضمون خپور سوی دی دا هم د فاضل کهزاد په قلم دی چې ښاغلي محی‌الدین «ایوبی» پښتو ته راړولی دی موږ ئې د مجلې ګرانو لوستونکو ته وړاندې کوو.

# منډیګګ

## د کندهار شمالي خواته د یرش میله لیرې په خاکریز کې

په هغه مقاله کې چې د [دمراسي غونډۍ] تر عنوان لاندې نشر سوه دا رغون پېژندنې د ځینو شواهدو په باره کې موخبرې وکړې چې د کندهار د جنوب غربي د ګرد پنجوائي دیوه کلي د کوچنۍ تپې څخه په ۱۹۵۰ او ۱۹۵۱ عیسوي کال کې د امریکائي حفریاتو د هیئت د غړي [مسترډ یو پري] له خوا کشف سوي او د لومړي پلا د پاره ئې د ارغنداو د حوزې او د کندهار د ښار د شاو خوا د اثر دې اولیري ځای اهمیت د قبل التاریخي تحقیقاتو د نقطه‌ نظره څرګند کړ څرنګه چې لیدل کېږي د دمراسي غونډۍ د کندهار د جنوب غرب په ۱۶ میلۍ کې واقع شوې ده او د [منډیګګ] تپه د دې علاقې په شمال د خاکریز په ناحیه کې پرته ده او له ښار څخه ۳۰ میله واټن لري، دغه دوه ټکي د ښار په جنوب شرق باواضح ډول وویل سي چې د ارغنداو په شمال او جنوب کې په ښکاره ډول څرګند دی چې د دې تاریخي رودخانې د دوارو خواو حوزه په ۲-۳ قم پېړیو کې د تهذیب او تمدن د راوونکې ده او ګرار ګرار د هغه ممیزات روښانه دی.

منډیګګ یوه مصنوعي تپه ده چې د هغه پسور د تپې په کنبته برخو کې و ۴۵۰ فټو ته رسیږي او د هغه اوږوالی د ځمکې د سطحې څخه تقریباً ۶۰ فټه دی د ۱۳۳۰ ش کال په سرلی کې چې د فرانسوي حفریاتو هیئت په لښکري بازار کې د کیندلو په کار لګیاؤ د تو موږي هیئت د غړو څخه [موسیو کزال] او ښځه ئې چې په کلو کلونې د هغه په [بو ندلیشري] کې په قبل التاریخي دورو او کلاسیکي ادوارو پوري تړلی حفریات کړي او په قبل التاریخي تحقیقاتو کې پوره تجربه لري د علمي مسافر یو په اثر د دې مهمې تپې په پیدا کولو بریالي سول دغه تپه د هغه پسور او اوږدوالي سره چې د مخه ئې تذکر وسو، تو له د مسلسلو خرابیو او د تېرو زرو، زرو کلو آبادیو څخه میدان ته راغلې ده او

ارغنداو د حوزې د قبل التاریخي ژوندانه د ادوارو د مرتبو د مطالعې بهترینه نقطه حسابېږي ولې چې د نېږې په ۶۰ فټه لوړوالي او سربېرسر ابادي بانديِ چې هره یوه ئې دیوې دا سې دورې او عصر ښکاره نمایندګي کوي چې د همدې په وجه د ارغنداو د حوزې د ژوندانه ۲-۳ زره کلن شواهد روښانه کېداى سي .

د افغانستان په طبیعي اوضاع ـ و کې دقت کول ښکاره کندې چې د مملکت د جنوب او جنوب غرب د غرواو سېدونکي کرار، کرار مخ پر کښته تللي دي او دغه طبیعي وضع آخر د اندوس جلګې او بالاخره پخپله د اباسین داوټې رودخانې ومجرا ته منتهي کېږي .

د «سرجان مارشال» د کشفیاتو په اثر ښکاره سوه چې د اندوس حوزه په قبل التاریخي دورو کې د یوه مدنیت د راونکې وه چې همدا د [اندوس د تهذیب] په نامه یادېږي او د دغـه تهذیب مرکزونه نن د [موهنجو دیرو] او [هړپه] په نوموسره شهرت موندلي دي او دغه دوه ځایونه د ۴ میله پقوانن یو د بل ښخه لیرې پراته دي او د یوه، دوه، دري زرو ق م پېړیو په مدت کې ئې خپل روښانه مدنیت در لود او د بر بر یــانو او وحشیانو د ورود په اثر سره ورك سوي دي چې د هغو مهمترین مدنیتو نه عجالتاً د ویدي سرودنو د تذکرو له رویه د [آریا] په نامه پېژنو او پښه پو هېږو چې دغه آریائي قبائل د آباسین د مرستیا- لانو د رودخانو یعنې د کابل، کرم، او ګومل د رودخانو د اندوس و حوزو ته را کښته سوي دي .

دغه د اندوس مدنیت د هغه صفت او ساحې سره چې ذکر سو و کړ د آسیا و غربي طرف ته لیرې د بین النهرین په خاوره کې هم بوه بلـه تشبیه د ځانه سره اري چې د «سومـروا کادرا» په ۲۳۰۰ او ۲۰۰۰ ق م کې معرفي کوي او نر هغه ځایه چې د کیندلو کار شاهدي ور کوي د سومروا کادرا او دسند د حوزې دا وسېدونکو په هغه دورو کې چې ذکر سوه ارتباط او تعلقاتو وجود در لود، هغه کال کله چې زه په امریکا کې وم د نوې دنیا په کتابخانو کې مو یو کتاب ولیدی د «هند د قبل التاریخي» په نامه د پروفیسر «ستوارت پي ګات» تالیف چې د هند د قبل التاریخ په برخه کې یو ورو ستنی، بهترین او ډېر جامع اثر ؤ د کتاب مؤلف افغانستان د تحقیقاتو او قبل التاریخي موقعیت له نقطه نظره د «ارتباطي پل» په نامه یاد کړی دی .

که د قبل التاریخي تحقیقاتو موقف په نوموړي چو ګاټ کې مدنظر و نیول سي، او د مندیګك او د هغه د تحقیقاتو اهمیت چې فرانسوي موسیو-کـزال په نوموړي سیمه کې کړیدی ښکاره کندېږي، د پروفیسر «پي ګاټ» د نظریاتو په اساس د سند په حـوزه کې قبل التاریخي تحقیقات د پـر په حفریاتو متـکې دي چې په اتفاقي او ازمایښي طور سره ئې په ځینو تپو کې صورت میندلي او هغه هم یا په سطحي ډول د تپو پر مخ او یا په جزوي ډول د نوموړو تپو په ادخ کې په عمل راغلي او د نوموړو بلځنو په د پـرو هوارو کې ئې د یوه خاك کش شـکل در لود او د هغه اصلي غایه امبار ور کول او د کثبت ؤ ګروندي تقویه کېدل ؤ حـال دا چې مندیګك یو د پره لوا وهـ ـكه تپه ده او له هغه ځخه د خاك کش

او زراعتي مځکې د تقویه کېدلو غرض مد نظر نه ؤ، ډېر اصولي او ارزنده تحقیقات د موسیو کزال له خوا په هغه ځای کې شروع سوه چې هم د اصل حفریاتو د نقطه نظره او هم د جغرافیائي موقعیت له حیثه ډېر مهم دی.

توله پوهېږي چې د ارغنداو حوزه د جغرافیائي موقعیت له حیثه پداسې ځای کې لوېدلې ده چې له یوې خوا د سند د حوزې او د بلې خوا د ایران د قبل التاریخي تهذیبو و خواته لار اري، هغه د مخفي رابور چې موسیو کزال د منډیګک د تپو مربوط د خپلو کارو په باره کې ور کړیدی او د هغې نظر ئې متن ئې په پاریس کې «د فرانسې د اسنادو او آثارو ساتلو په اکاډمي» کې وړاندې کړیدی او د تریه په جریدو کې د هغه اهمیت انعکاس کړی دی، چنانچه د «مانچستر ګاردین» د ورځپاڼې ایکونامکې «د اندوس د مدنیت په حاشیه کې» تر عنوان لاندې او «د افغانستان د قبل التاریخي تحقیقات» په عنوان یوه مقاله په نوموړي ورځپاڼه کې چاپ کړه.

د موسیو کزال د پلټنو شروع کېدل چې د منډیګک په تپه کې ئې صورت وموندی د یوې جرېه په شکل سره ؤ چې د تپې د سر څخه تر پایه پورې ئې هغه څېړلې او بدې نو که د تپې د مدنیت سر پر سر طبقات څرګند سویدي په بېخي کښته طبقه کې لومړی بنا معلومېږي او د ځینو سوړیو او غارو له رویه حدس وهل کېږي چې په هغه ځای کې کوچیان تېر سویدي چې تر هغه آنه پورې ئې فلزات نه پېژندل او د فلزاتو هیڅ اثر نه دی لیدل سوی په اولو طبقو کې د مفرغ د دورې مختلفې آبادۍ ښکاره سویدي چې په لومړۍ مرحله کې ئې خپل کورونه د خټو او په دوهمه مرحله کې ئې د اومو خښتو څخه جوړ کړیدي.

د خاورې پرمخ د دغه ابتدائي منازل تر ټولو دریمې دورې د ودانیو شواهد په ښکاره ډول تشخیصوي او هم ډېره جمعیت ګډ او مجموعي ژوند څرګندوي په دغه دوره کې ئې دېوالونه د دننه خوا څخه په خښتو یا پوسره تقویه کړیدي د خښتو اختراع او د هغه استعمال په دېوالو کې توجه جلبوي، په دغه ځای کې لومړی پلا یو مهر زموږ و لاس ته راغی، چې وروسته د هغه نظیر په مکرر ډول پیدا شول او د هغه پرمخ د هندسي شکلونه لیدل کېږي، د غه رنګه کوچني صورتونه (هیکلونه) د هغه غوبو د خوسیانو او جوانه ګانو چې غټ یو کونه ئې وه کشف سوه، لېکن انساني صورتونه لاس ته نه راغله، د ډېرینو لوښو په ترتیب سره رخام ډېره او بالاخره د مفرغ شواهد د اصلي مځکې د سطحې څخه تر پنځه متره پورته ظاهر سول، د منډیګک د خاورینو لوښو او هغه لوښو ترمنځ چې په «کوېټه» کې پیدا سوي وه ارتباط موجود دی څرنګه چې ولیدل سوه په منډیګک کې د کوچیانو د ژوند د وخت څخه د مفرغ او د سپینو تر دورو پورې د ټولو طبقو د مختلفو ودانیو شواهد کشف سول.

د شاغلي [هاروني] ژباړه

# رنګونه په ژوندکې لوی تاثیر لري

ځینې پوهان ودې ته متوجه شویدي چې رنګونه د انسانانو په ژوند او روحیه کې لوی تاثیرات لري او دا رنګونه چې زموږ په ژوندکې مؤثر دي هم دغه د کالو، بستر، د استوګنې د ځای او فرش و ظرف رنګونه دي چې شپه او ورځ موږ ورسره سروکار دی د هغه پوهې له مخې چې پوهان ئې پدې باب کې لري دا رنګونه د خپلو خاصیتو سره په لاندې ډول ایکل کېږي.

### ۱: سور رنګ

دا رنګ په انسان کې عصبانیت او مغمومیت پیدا کوي؛ جنسي احساسات پاروي لکه پدې باره کې چې یوه تاریخي تجربه هم ښه ښکاره ده چې د ډنمارک د یوې ملکې [آنبل] د دې رنګ سره خورا جوړه وه. د استوګنې د ځای او د کور د نورو لازمه سامانو رنګ ئې سور ؤ د پاچا توجه ئې د جنسي احساساتو له جهته ور جلب کړې وه. مګر داسې ورځ به راغله چې پوه وار یا دوه واره به ئې قهر ؤ عتاب نه ورته کاوه څو ئې طلاقه کړه.

### ۲: ژېړ رنګ

دا رنګ پر اعصابو خصوصاً پر سترګو ډېر بدتاثیر لري لکه ثابته شوي چې د دې رنګ د استعمال سره د سترګو لیدو ته خستګي پېښه شوي وي هغه څوک چې د کور کالي یا نور شیان ئې ژېړ وي یا په بل عبارت ډېر سروکارئې د ژېړ رنګ سره وي هغه نامهربانه، بې علاقه خودسره او سوداٸي هم وي.

### ۳: نارنجي رنګ

دا رنګ که ګڼه وي د سور رنګ خاصیت لري او که اوم وي د ژېړ رنګ خاصیت لري.

### ۴: آبي رنګ

دا رنګ پر ټولو اعصابو چې ډېر حرکات کوي ښه اثر لري او کار او فعالیت، سعیې او کوښښ ته سړی اړباسي د بستر او نورو داسې لوازمو دپاره ښه روښانه آبي رنګ ډېر ګټور او موزون رنګ دی د دې رنګ د استعمال کوونکو زړونه هم صفا او باور کوونکي وي.

### ۵: زرغون رنګ

دا رنګ د سور رنګ پر عکس جنسي احساسات وژني او استعمال کوونکي ئې که ډېر لیدونکي ئې آرام قانع، بردباره لېکن فعال وي که څوک هغه څه چې دې رنګ تاثیر پکښې کړی وي خوشکېت او قهرو کې داسې ئې هغه آن ته ور سره معلوموي بلکه انتقام یوې بلې ورځې ته ساتي.

### ۶: بنفشي رنګ

دا رنګ که کم رنګی وي اثر ئې د آبي رنګ سره یو شانته دی که ګڼه وي د سترګو د خستګي او ناراحتي موجب ګرزي سړی ګروبوي او روحیه کمزوري کوي.

### ۷: فیلي رنګ

دا رنګ که کم رنګی وي د آبي رنګ خاصیت لري که تېزوي د بنفشي رنګ خوی لري.

### ۸: سپین رنګ

د کور بستره، کالي او نورو لوازمو دپاره چې ورسره سروکار مو دی تردې ښه رنګ نشته، بد اثر ئې هیڅ ندی ښودل شوی. [*]

# حکیمانه تجاهل

یو سړی یوه ورځ بل سړي پسې ځورا په چټکۍ څغسته سقراط ته یې د لیرې په سر کوسه دې دوهم سړي ور ناري کړه: چې هغه تښتېدونکی را ورکړه.
مګر سقراط سر په نه ګرځاوه او نه یې دهغه سړي ونیولو نه هڅه وکړه. دغه ناره والا سړی چې نزد سقراط یو ړی راورسېدی ورته یې ورته وویل چې آیا ته په غوږو کڼ یې؟ ما درناري کړه چې هغه تښتېدونکی سړی را ورکړه هغه قاتل دی ناځان کوڼ واچاوه.

سقراط وویل: قاتل یعنې څه؟

سړي ورته وویل: قاتل هغه چا ته وایي کوم چې وژل کوي.

سقراط: نو هغه سړی ګوا کي قصاب دی.

سړي وویل: ناوهه! قاتل هغه څوک دی چې خپل همنوع وژني.

سقراط: نو یعنې سپاهي دی.

څغلېدونکي سړي وویل: بې مغزه! قاتل هغه څوک دی چې خپل همنوع په صلح او ارامۍ کې وژني.

سقراط: نو بیا هغه سړی ګوا کي جلاد دی.

سړي بیا وویل: افسوس دی ستا پر ناپوهۍ وی قاتل هغه څوک دی چې خپل همنوع پخپل کور بلکه پخپل بستر کې وژني.

سقراط: اوس پوه شوم نو هغه یو سړی یعنې طبیب دی.

څغلېدونکي اضافه ورسره اوږده نکړه او پر خپله لاره ولاړ.

د نو میالي ترجمه

---

[*] که څه هم عام خلک ودې کار ته توجه نلري خو لا داده چې د کور د شیانو او سامانو رنګونه هر ډول وي څکه هر ډول رنګونه یو د بل خاصیتونه زانلوي نو که څوک نه غواړي چې ناپوهي چې د بند رنګ څخه استفاده وکي هغه به بدې صورت د بد رنګ له زیان څخه هم په امان وي.

KANDAHAR

MONTHLY MAGAZINE

OFFICE:-

PRESS DEPARTMENT

KANDAHAR , AFGHANISTAN

EDITOR A.M 'KARZI'

(JUNE) 1962

GOVERNMENTAL PRESS